| | |
|---|---|
| | |
| **دریمه برخه**<br>**( په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | ۴- د ژوند انه اړینې پوهې او مهارتونه زده کوو، اخلاقي او ټولنیز آدبونه زده کوو، مبتکر او نوښتګر کېږو.<br>**آخري یا روستنی فعالیت ( ۲۰ دقیقې).**<br>۱- یو شمېر زده کوونکي ( پیاوړې او کمزوري زده کوونکي ) دې د ښوونکي له خوا وټاکل شي او خپل ځوابونه دې په ټولګي کې ولولي. |
| | **د ښوونکي لپاره اضافه معلومات**<br>د صنعتی ټولنو څخه د مخه، ښوونه او روزنه یوازې دیو څو کسو په لاس او اختیار کې وه چې پوره وخت او لازمې پیسې یې د هغې د دوام ورکولو لپاره په خپل واک کې درلودې. د خلکو د ستر اکثریت لپاره وده د بېلګې او تقلید په بڼه د دوی د لویانو د همغه ټولنیزو عادتونو او کاري مهارتونو د زده کړې په معناوه.<br>لکه څرنګه چې لیدلی مو دي ماشومانو به زیاتره په ډېر کم عمر کې د کورنۍ کرکیلې. او لاسي صنایعو په چارو کې په مرسته کولو پیل کاوه، لوستل د دوي په ورځني ژوندانه کې اړین او حتی ګټورنه و. ښوونه او روزنه د زده کوونکو د زده کړې لپاره په ننني بڼه په هغه آبادیو کې چې د ښوونځي په نوم جوړ شوي وو، ورو ، ورو را څرګنده شوه د دې سره سره یوه نیمه پیړۍ مخکې او ان له هغې څخه ډېر وروسته هم د شتمنو اولادونو ته زیاتره د خصوصي ښوونکو له خوا زده کړه کېدله. د صنعتي کولو جریان او د ښارونو پراختیا د تخصصي زده کړې لپاره د خلکو د غوښتنو د زیاتوالی سره مرسته وکړه. اوس خلک په څو ډوله مختلفو فعالیتونو کې بوخت دي او پس له دې کاري مهارتونه نشي کولی چې نېغ په نیغه د مور او پلار ( والدینو) څخه اولادونو ته انتقال شي(۱) |

(۱) ګیدنز، انتوني، جامعه شناسي ژباړه منو چهر صبوري، د نی خپراتهران ۱۳۴۷ لمریزکال څلورم چاپ، ۴۴۸ مخ

| سرلیکونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له ځانه زده کړه ( خود آموزي)** |
| ۲- لویه موخه | زده کوونکي دې ( له ځانه زده کړې) د اهمیت او وسایلو سره آشنا شي. |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده کوونکي دې د دغه لوست تر لوستلو وروسته:<br>۱- په دې باندې پوه شي چې انسان تل د زده کړې په حال کې دی؛<br>۲- په ژوندانه کې د تل ترتله او نه پلان شوي زده کړې اهمیت درک کړي؛<br>۳- له ځانه زده کړې له مفهوم او اهمیت سره آشنا شي؛<br>۴) له ځانه زده کړې وسایل و پیژني. |
| ۴- د ښوونې دود | ۱- مقایسه کول،۲- د وینا دود، ۳- پوښتنه او ځواب۴- د مسئلې حل او پلټنه. |
| ۵-د زده کـړې د اړتیـا وړ وسایل | ۱- درسي کتاب، ۲- د ښوونکي د لارښود کتاب،۳- تخته او تباشیر. |
| ۶- درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه یې په یوه درسي ساعت کې تدریس کېږي. |
| ۷- د ارزونې طریقه | پوښتنه او ځواب،۲- پرتله کول. |
| لـومړی برخـه ( پـه یـوه درسي ساعت کې دې تدریس شي) | **د لوست پیل ( ۱۰ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره دعاطفي اړیکو نیول،د حاضرۍ اخیستل او د تېر لوست تکرار.<br>**لومړی فعالیت (۵ دقیقې)**<br>په دې فعالیت کې د دمسئلې حل او پلټنه.له دود څخه په ګټه اخیستنې سره کار وکړي.<br>**د لومړي فعالیت ځواب**.<br>۱- بلې یا هو.<br>۲- ډېرې لارې شته:<br>۱- یوه لاره دا ده چې موږ په خپل عادي ژوندانه کې هروخت یو څه زده کوو؛<br>۲- د کتاب، ورځپاڼې او مجلې لوستل، د رادیو اورېدل، د تلویزیون کتل او له انټرنېټ څخه ګټه اخیستل، د معلوماتو د لاسته راوړو نورې لارې دي. |

| | |
|---|---|
| | **لومړی متن (۱۵ دقیقې)** |
| | له لومړي فعالیت څخه وروسته متن، زده کوونکو ته ولولئ او توضیح ورکړئ.<br>**( د وینا دود)**<br>**دویم فعالیت (۵ دقیقې)**<br>۱- په دې فعالیت کې د پوښتنې او ځوابونه له دود څخه په ګټه اخیستنې سره کار وکړئ.<br>**د دویم فعالیت ځواب.**<br>۱- یوبې مطالعه کوي چې له ځانه زده کړه ده او په بل انځور کې له ځانه زده کړه نه ده بلکې زده کوونکي له ښوونکي څخه درس زده کوي.<br>**دویم متن ( ۱۰ دقیقې)**<br>له دویم فعالیت نه وروسته متن زده کوونکو ته توضیح کړئ ( د وینا دود )<br>**کورنۍ دنده :**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د لوست په وروستنۍ برخه باندې په کور کې کار وکړي او راتلونکي لوست ته بې تیار کړي. |
| **دویمه برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او د حاضرۍ اخیستل.<br>**د لوست تکرار(۱۰ دقیقې)**<br>۱- لوست د متن او د لوست موخوته په پاملرنې سره، خلاصه شوی دی .<br>۲- زده کوونکو ته ور زده کړئ چې د درس متن څرنګه خلاصه شوی دی ترڅو په راتلونکو درسونو کې وکړای شي چې د درس لنډیز په خپله ولیکي.<br>**پوښتنې ( ۱۰ دقیقې)**<br>زده کوونکو باید مخکې له مخکې په ځیر سره د متن د مطالعې له مخې ځوابونه برابر کړي وي. د زده کوونکو ځوابونه پر تخته باندې و لیکئ او په پای کې هغوي ته ووایئ چې کوم بې صحیح او کوم بې غلط دي.<br>**د پوښتنو سم ځوابونه په لاندې ډول دي:**<br>۱-کتاب ، ورځپاڼه او مجله ولولو، راډیو واورو، تلویزیون وګورو او د انټرنېټ له پاڼو څخه د معلوماتو د لاسته راوړلو په خاطر، ګټه واخلو .<br>۲- د زده کوونکو په نظر پورې اړه لري.<br>۳- د زده کوونکو په نظر پورې اړه لري.<br>**وروستنی فعالیت ( ۲۰ دقیقې)**<br>د زده کوونکو ځوابونه وګورئ او صحیح ځوابونه پر تخته باندې ولیکئ.<br>دوي باید دغه ټکي ته اشاره کړي وي چې کتاب، ورځپاڼه، مجله، راډیو، تلویزیون او انټرنېټ د ښو او ګټورو مطلبونو ترڅنګ امکان لري چې ځینې نا مطلوب او مضر مطالب هم ولري. له دې کبله موږ باید تر ګټې اخیستنې دمخه ډېره پاملرنه او دقت وکړو چې دهغو له مضرې او نامطلوبې محتوا څخه استفاده ونکړو.<br>په پای کې زده کوونکي له دغه خطر څخه پخپله عالمانه او خیرغوښتونکي وینا وپوهوئ. |

| سرليکونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **اقتصاد** |
| ۲- لویه موخه | زده کوونکي دې په ژوندانه کې د اقتصاد د اهمیت سره آشنا شي. |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده کوونکي د دې درس له لوستلو وروسته باید:<br>۱- د انسان د مادي اړتیاوو په لړ کې د اقتصادي فعالیتونو اهمیت درک کړي؛<br>۲- د تولید او خدمت تر منځ توپیر وپیژني؛<br>۳- د توزیع د مفهوم او اهمیت سره آشنا شي؛ |
| ۴- د ښوونې دود | ۱- د وینا دود ۲- پوښتنه او ځواب ۳- مستقیم تدریس. |
| ۵-د زده کـــړې د اړتیاوړ وسایل. | ۱- درسي کتاب؛ ۲- د ښوونکي د لارښود کتاب، ۳- تخته او تباشیر |
| ۶-درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه یې په یوه درسي ساعت کې تدریس کېږي. |
| ۷- د ارزونې طریقه | ۱- پوښتنه او ځواب ۲- پرتله کول. |
| لومړۍ برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي) | **د درس پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او د حاضرۍ اخیستل.<br>**لومړي فعالیت (۱۰ دقیقې)**<br>په دغه فعالیت کې د مستقیم تدریس د دود له مخې کار وکړئ؛<br>**د لومړي فعالیت ځواب.**<br>د بېلګې په توګه، که چېرې مو د ډوډۍ په هکله خبرې وکړې، کولی شئ چې د دغه لاندې پړاو ونو نومونه واخلئ: ۱- دبزګر پواسطه د غنمو کرل؛۲- د غنمو اوبول او روزل؛ ۳- لوکول؛۴- د وښو څخه د دانو جلاکول؛ ۵- د غنمو اوړه کول؛ ۶- د اوړو وړل او را وړل کورته او ډوډۍ پخولوته؛ ۷- خمیره کول؛ ۸- ډوډۍ پخول.<br>**لومړي متن (۵ دقیقې)**<br>متن د وینا د دود له مخې توضیح کړئ. په دغه درس کې دې زده کوونکو ته د اقتصادي فعالیتونو اړتیا او اهمیت توضیح کړی شي. |

| | |
|---|---|
| | **دویم فعالیت** (**۵ دقیقې**)<br>په دې فعالیت کې د پوښتنې او ځواب د دود له مخې کار وکړئ.<br>**د دویم فعالیت ځواب**:<br>په دې فعالیت کې اوله هغه ﺷخه په ورستي متن کې دې د زده کوونکو پاملرنه د اقتصادي فعالیتونو مختلفو ډولونو ته راواړول شي:<br>تولید او خدمت. په (( اضافي معلوماتو کې)) کولی شئ چې د تولید او خدمت په باره کې زیاتې څرګندونې مطالعه کړئ.<br>**دویم متن** (**۱۵ دقیقې**)<br>۱- متن زده کوونکو ته توضیح کړئ ( د وینا دود)<br>۲- په پای کې له څو کسو زده کوونکو ( پیاوړي، منځني او کمزوري) څخه پو ښتنې وکړئ ترڅو ډاډه شئ چې هغوی درس زده کړی دی.<br>**کورنۍ دنده**:<br>زده کوونکو ته لارښونه وکړئ چې د درس په ورستنۍ برخه باندې په کور کې کار وکړي او د راتلونکي درس لپاره بې تیار کړي. |
| دویمه برخه<br>یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي | **د لوست پیل** (**۵ دقیقې**)<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او د حاضرۍ اخیستل:<br>**د لوست تکرار**( **۱۰ دقیقې**)<br>لوست دې متن او د هغه موخوته په پاملرنې سره خلاصه شي.<br>**ځوابونه**:<br>▪ د انسان اقتصادي فعالیت، د هغه د مادي اړتیاوو د پوره کولو لپاره تر سره کېږي؛<br>▪ یو ډول اقتصادي فعالیت هغه دی چې د هغه په ترڅ کې محصول او یا ځینې څیزونه ( شیان) تولیدېږي.<br>▪ د اقتصاد په بل ډول فعالیت کې کوم شی نه تولیدېږي بلکې ( خدمت) وړاندې کېږي لکه هغه کارونه چې ډاکتران او نور دولتي کارکوونکي بې چې ترسره کوي.<br>**پوښتنې**(**۱۰ دقیقې**)<br>زده کوونکو باید مخکې له مخکې په غور سره د متن د لوستلو له مخې ځوابونه برابر کړي وي. د زده کوونکو ځوابونه پر تخته باندې ولیکئ او په پای کې هغوی ته ووایئ چې کوم بې صحیح دي او کوم بې غلط دي.<br>د پوښتنو صحیح ځوابونه په لاندې ډول دي.<br>۱- هغه فعالیتونه چې د انسان د مادي اړتیا وو د لرې کولو په خاطر تر سره کېږي، اقتصادي فعالیتونه بلل کېږي. |

۲- اقتصادي فعالیتونه کولی شو چې د مختلفو لورو ( جهتونو) په درلودلو سره، په مختلفو ډولونو باندې ډلبندي کړو. د دې وېشنو څخه یو بې دادی چې هر اقتصادي فعالیت یا تولید دی او یا خدمت ( توزیع هم یو ډول خدمت شمېرل کېږي)

۳- زده کوونکي کولی شي چې د خپلې استوګنې له چاپېریال څخه مثالونه راوړي. باید دې ته ډېره پاملرنه وشي چې آیا هغوي کولی شي چې تولیدي چارې په سمه توګه له خدماتي چارو څخه جلا کړاي شي او که نه؟

**وروستنی فعالیت** (۲۰ دقیقې)

د زده کوونکو ځوابونه وګورئ او صحیح ځوابونه پر تخته باندې ولیکئ.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

عرضه او تقاضا د دې لوست له اساسي مفاهیمو څخه شمېرل کېږي. دا دوه مفهومه موږته په بازار کې د خلکو او پلورونکو – کړنې او رفتار په ګوته کوي. پلورنکي، د ځانګړو (خاصو) شیزونو غوښتونکې دی (تقاضا) او پلورونکي دارتیاوړ شیزونه هغوی ته وړاندې کوي( عرضه). تقاضا هغه محال پیدا کېږي چې خلک یې ځانګړي محصول ته ارتیا پیدا کړي او د پیرلو وس او توان یې هم ولري.د لاندې عواملو له امله د تقاضا کچه د یو ځانګړي محصول په وړاندې کمیږي. او یا ډېریږي:

۱- بیه: کله چې د یو محصول بیه لوړه وي، تقاضا ورته کمه وي، مګر کله چې بیه یې ټیټه شی نو د تقاضا کچه لوړیږي.

۲-عاید: کله چې د خلکو عواید او توانایي زیاته وي، د هغوي د تقاضا کچه زیاتوالی مومې، او که چېرې عواید یې کم وي، د هغوي تقاضا وی هم کمښت مومي.

۳- سلیقه: د افرادو ذوق او سلیقه ځانګړو شیزونو ته د هغوي پر تقاضا اغېزه لري. د بېلګې په توګه؛ ځینې خلک کبان ډېر مصرفوي، په داسې حال کې چې ځینې خلک کبان لږ مصرفوي او یا یې هېڅ نه مصرفوي. د بدیل یا جانیشین شیانو قسمت:که چېرې نومړي محصول په یوه کس یعنې فرد پورې تړلي نه وي او ممکنه وي چې د هغوي پر ځای له نورو محصولاتو نه استفاده وشي د یادو شوي شیزونو قیمت هم د افرادو پر تقاضا اغېزه اچوي.

د بېلګې په توګه:که چېرته د پسه غوښه ګرانه شي او د خوسکي غوښه ارزانه وي، ډېر شمېر خلک به د پسه د غوښې پر ځای د خوسکي له غوښې نه استفاده وکړي. او په پایله کې د پسه غوښې ته تقاضا د خوسکي د غوښې د ارزانیدلو له امله کمېږي. عرضه هم د تقاضا سره مستقیمه اړیکه لري.کله چې د تقاضا کچه لوړه شي. دعرضې کچه به هم لوړه شي. بالعکس کله چې د تقاضا کچه ټیټه شي، د عرضې کچه به هم ټیټه شي. د محصول بیه، د هغه شیز یا محصول د اومو موادو بیه او تکنولوژي له هغو مهمو عواملو څخه دي چې د عرضې په کچه اغېزه اچوي.پیدا کول او وېشل ( تولید او توزیع ) دوه مهم اقتصادي فعالیتونه دي چې په اړه یې په دې لوست کې په لنډ ډول توضیح ورکړل شوې ده. تولید هغو فعالیتونو ته ویل کېږي چې د هغو په واسطه لومړنی مواد د مصرف وړ په محصولاتو تبدلیږي د بېلګې په توګه هغه کارخانه چې غوړي تولیدوي. لومړی یې لومړني مواد اخلي سیموته یې وړي ترڅو د مصرف کونکولاسته ورسیږي چې دغه کارته وېش ( توزیع) وایي. نو ویلی شو چې تولید او توزیع یو د بل بشپړوونکی ( مکمل ) دي: د تولید په نتیجه کې جنس جوړیږي او د توزیع په نتیجه کې جنس د خلکو په واک او اختیار کې ورکول کېږي.

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د درس موضوع | **پيسې (پول) او بانک**. |
| ۲- لويه موخه | په اقتصادي ژوندانه کې د پيسواو بانک د ضرورت او اهميت سره آشنا کيدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده کوونکي د دې درس له لوستلو وروسته بايد:<br>۱- په اقتصادي ژوندانه کې د راکړې ورکړې ( مبادلې) ضرورت او اهميت درک کړي.<br>۲- د جنس په بدل کې د جنس د ورکړې له معاملو يا بارتری معاملو سره چې له پيسو پرته تر سره کېږي، آشنا شي.<br>۳- په معاملو کې د پيسو غوره او حياتي نقش وپېژني.<br>۴- د بشر د تاريخ په اوږدوکې د پيسو د اوښتون (تحول) سره په لنډه توگه آشنا شي.<br>۵- بانک و پېژني او د هغه د کړو وړو سره بلد شي.<br>۶- له بانک څخه د گټې اخيستو لپاره د اسلامي احکامو سره سم چې سود په کې نه وي وهڅول شي. |
| ۴- د ښوونې دود | ۱- د مسئلې حل او پلټنه ۲- د وينا دود ۳- پوښتنه او ځواب۴- مستقيم تدريس |
| ۵-د زده کړې د اړتياوړ وسايل | ۱- د لوست کتاب ؛ ۲- د ښوونکي د لارښود کتاب؛۳- توره دړه او تباشير. |
| ۶- درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخووېشل کېږي او هره برخه بې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| ۷- د ارزونې طريقه | **پوښتنه او ځواب، پرتله کول، مستقيم تدريس**. |
| لومړۍ برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي). | **د لوست پيل (۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړيکو نيول، د حاضرۍ اخيستل او د تېر لوست تکرار.<br>**لومړي فعاليت (۵ دقيقې)**<br>په فعاليت کې د مسئلې حل او پلټنې له طريقې څخه په گټه اخيستنې سره کار وکړئ.<br>**د لومړي فعاليت ځوابونه**:<br>۱- د اقتصادي فعاليتونو غوره برخه څنډېږي، له دې کبله به خلک د دې وس ونه لري چې د خپلې اړتياوړ زيات شيان تهيه او برابر کړاي شي.<br>۲- خلکو به جنس په جنس سره بدلول. |

| د دویم فعالیت ځواب | لومړي متن (۵ دقیقې) |
| --- | --- |
| | د لومړي فعالیت څخه وروستی متن زده کوونکو ته ولولئ او ورته توضیح یې کړئ ( دوینا دود)<br>**دویم فعالیت** ( **۵ دقیقې**)<br>فعالیت د مستقیم تدریس د طریقې څخه په ګټه اخیستنې سره تر سره کړئ.<br>۱- داسې بې وګڼئ چې هر کس کولی شي چې ۵۰ کیلو ګرامه شی یو سي. کله چې یو ملیون افغانۍ زرګون نوټونه وي، د دوو کیلو ګرامو په شاوخوا کې وزن به ولري. څرګنده خبره ده چې دغه اندازه پیسې به یو کوچنی هم په ښه ډول سره یوړای شي.<br>۲- که چېرې یو ملیون افغانۍ پنځګونې سیکې ولرو نو (۲۰۰۰۰۰) سیکې به ولرو. که چېرې هره سیکه پنځه ګرامه دروندوالی ولري، د هغو دروندوالی ( وزن) به ۱۰۰۰ کیلوګرامه (یوټن) شي. که چېرې هر کس وکړای شي چې ۵۰ کیلو ګرامه وزن یوړی شي نو د هغو دوړو لپاره به (۲۰) کسوته اړتیا ولرو. |
| **: دویمه برخه**<br>**(په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل** (**۵ دقیقې**)<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او د حاضرۍ اخیستل.<br>**د لوست تکرار** (**۱۰ دقیقې**).<br>د زده کوونکو کار وارزوئ دوي باید د لوست لنډیز په څو جملو کې لیکلي وي. د لوست لنډیز کولی شو چې په لاندې ډول ولیکو:<br>۱- په ډېرو پخوا وختونو کې انسانانو ډېر ساده ژوند درلود. هرې کورنۍ د خپلې اړتیا وړشیان تولیدول او خلکو ډېر لږ د راکړې ورکړې معاملې ته اړتیا پیدا کوله.<br>۲- که چېرې به په کوم ځای یا چارې کې معاملې کولوته اړتیا پیدا شوه، نو جنس به یې په جنس باندې بدلولو او له پیسو څخه به یې ګټه نه اخیسته.<br>۳- په ځینو ټولنو کې د ځینو توکو لکه: څرمن، او سپنې او دوي ته ورته شیانو څخه د راکړې ورکړې د مبادلې د واسطې په توګه کار اخیستل کیده.<br>۴- د رسیدنه وروسته د فلزی پیسو او سیکو او په پای کې د کاغذي پیسو یا بانکنوټونو څخه د راکړې ورکړې د واسطې په توګه ګټه اخیستل کېده.<br>۵- بانک د خلکو پیسې ساتي، پیسې انتقالوي، او د خلکو د لږو پیسو څخه په زیاتو پانګه اچونو کې کار اخلي. |

**پوښتنې (۱۰ دقیقې)**

زده کوونکو باید په ځیر سره د متن د مطالعې له مخې، مخکې له مخکې ځوابونه برابر کړي وي.

د زده کوونکو ځوابونه به پر تخته باندې ولیکئ او په پای کې هغوي ته ووایئ چې کوم یې صحیح دي او کوم یې غلط دي.

**د پوښتنو سم ځوابونه په لاندې ډول دي:**

۱- د یوه جنس بدلول له بل جنس سره.

۲- هر چا به جنس یا محصول نه اخیسته، پلورونکی باید یو داسې څوک پیدا کړي چې د هغه محصول ور څخه واخلي او دده د اړتیاوړ محصول ولري.

۳- راکړه ورکړه ( معامله) بې آسانه کړه او سوداګرئ ته یې وده ورکړه.

۴- فلزي پیسو زیات وزن درلود، د هغو لیږد زیاتې قوې او زیات مصرف ته اړه درلوده.

۵- بانک د خلکو پیسې ساتي ،پیسې انتقالوي او د خلکو د لږو پیسو څخه په غټو پانګه اچونو کې کار اخلي.

**وروستنی فعالیت ( ۲۰ دقیقې)**

د زده کوونکو ځوابونه وګورئ او سم ځوابونه یې په تخته باندې ولیکئ.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

نن سبا بې له پیسو ژوند کول د تصورنه لرې خبره ده. ځکه کله چې کوم شی اخلو او یا یې خرڅوو باید چې لومړی د پیسو پواسطه د هغه قیمت معلوم کړو او بیا یې ارزښت وټاکو. دویم دا چې د پیسو په ورکولو او اخیستلو سره هغه شی اخلو او خرڅوویې. همدارنګه د پیسو څخه په ګټه اخیستنې سره کړا ی شو چې خپله شتمني زېرمه کړو او د اړتیا په صورت کې بیله کومې ستونزې د نورو شیانو په اخیستلو کې له هغې څخه کاراخلو.

لکه څرنګه چې د درس په متن کې ورته اشاره شوي ده، انسانانو د تاریخ په اوږدوکې د ډېرو شیانو څخه د پیسو په حیث یا د راکړې ورکړې د وسیلې په توګه کار اخیستی دی . خو نن سبا د نړئ په ټولو هېوادونو کې د کاغذی پیسو څخه چې د بانکنوټونو په نوم یادیږی، ګټه اخیستل کیږي.

اوس د راکړې ورکړې په چاروکې د آسانتیا لپاره د بانکي چک څخه هم په زیاته اندازه کار اخیستل کېږي. بانکي چک د بانکونو له خوا څخه حقیقيٰ او حقوٓقي اشخاصوته ورکول کېږي. او هغه څوک چې پخپل بانکي حساب کې پیسې ولري، خلکوته د پیسو پر ځای، چک ورکوي. چک یوه کاغذي پاڼه ده چې د بانک آرم( نښان) لري او پر مخ باندې یې د سړي نوم او نور مشخصات (ځانګړنې) او د پیسو اندازه لیکل کېږي او د پیسو خاوند باید د هغې پر مخ باندې لاسلیک وکړي.

کله چې چک بانک ته ورکول کېږي، بانک د پیسو څښتن د بانکي حساب څخه هغه اندازه پیسې د چک ور وړونکي ته ورکوي او د پیسو د څښتن له حساب څخه یې کموي.

اعتباري کارت د راکړې ورکړې تر ټولو نوي وسیله ده چې د نړۍ په زیاترو هېوادونو کې له هغې څخه کاراخیستل کېږي. دغه کارت یوه الکترونیکي وسیله لري چې د سړی په بانک کې موجودې پیسې په خپله حافظه کې ساتي هر کله چې وغواړي چې چاته پیسې ورکړي، کارت په ځانګړي دستګاه کې ننباسي د پیسو اندازه لیکي او بیا کارت بېرته راوباسي. پدې ډول همغه اندازه پیسې چې دستګاه ته ور د ننه شوي دي، د لومړي سړي د حساب څخه چې د کارت څښتن دی کمیږي او د دویم سړي په حساب کې زیاتیږي.

۱- حقیقی شخص: د حقونو د ګویا ( ږغیدونکي) موجود څخه یعنې خپله د انسانانو څخه عبارت دي انسان د خپل ژوند پیدایښت څخه تر مرګه پورې د ټولو مدني حقونو څښتن شمېرل کېږي.

۲- حکمی یا حقوقي شخص: دا هغه ډول شخصیتونه دي چې د حقیقي شخصیتونو ( انسانانو) د ادارې د تمرکز څخه منځته راځي لکه پخپله دولت او د هغه اړوند ادارې.

| سرلیکونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **نړیوال اقتصاد** |
| ۲- لویه موخه | د نړۍ د خلکو د اقتصادي اړیکو سره د زده کوونکو آشنایي. |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده کوونکي په دې باندې وپوهېږي چې د یوه هېواد محصولات او جنسونه نورو هېوادونو ته وړل کېږي او هلته خرڅېږي. |
| ۴- د ښوونې دود | ۱- فکري هڅونه،۲- د وینا دود، ۳- پوښتنه او ځواب۴- د متن تحلیل |
| ۵-د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | ۱- درسي کتاب، ۲- د ښوونکي د لارښود کتاب،۳- تخته او تباشیر. |
| ۶-درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه یې په یوه درسي ساعت کې تدریس کېږي. |
| ۷- د ارزونې طریقه | د شرایطو سره سمه د ښوونکو په خوښه. |
| لومړۍ برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي) | **د لوست پیل (۵ دقیقې).**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره دعاطفي اړیکو نیول، او د حاضرۍ اخیستل.<br>**لومړۍ فعالیت :**<br>فعالیت د متن د تحلیل له دود څخه په کار اخیستنې ترسره کړئ.<br>**د لومړي فعالیت ځواب.**<br>۱- د بېلګې په توګه، قلم، کتابچه، بکس، خط کش او ....<br>۲- په دې دلیل چې د نړۍ د ټولوهېوادونو ترمنځ اقتصادي اړیکې موجودې دي او سوداګرد یوه هېواد محصولات نورو هېوادونو ته انتقالوي او هلته یې خرڅوي.<br>۳- دغې پایلې ته رسیږو چې د نړۍ د مختلفو هېوادونو تر منځ اقتصادي اړیکې موجودې دي او په هر هېواد کې کولی شو چې د مختلفو هېوادونو محصولات وپېرو.<br>**لومړي متن (۱۰ دقیقې)**<br>متن د وینا دود له مخې وڅېړئ او په پای کې له زده کوونکو څخه یو څو پوښتنې وکړئ.<br>**د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او حاضرۍ اخیستل. |

| | دویم فعالیت (۱۰ دقیقې) |
|---|---|
| دویمه برخه (په یوه درسـي ساعت کـې دې تدریس شي) | فعالیت د( پوښتنې او ځوابونه) د دود له مخې ترسره کړئ.<br>**د دویم فعالیت ځوابونه:**<br>۱- د افغانستان ډېر مهم صادراتي محصولات عبارت دي له غالۍ، پوست، وچې مېوې او د اروبوتې<br>۲- په خواشینۍ سره چې زموږ د هېواد صادرات د وارداتو په نسبت ډېر کم دي. ځکه چې د اوږدو جګړو له کبله زموږ هېواد د پرمختک څخه وروسته پاتې شوی دی او اوس موږ مجبوریو چې زیاتره د خپلې اړتیا وړ توکي له نورو هېوادوڅخه وارد کړو.<br>**دویم متن (۱۰ دقیقې)**<br>متن د وینا دود د طریقې له مخې شرحه کړئ او په پای کې له زده کوونکو څخه څو پوښتنې وکړئ. |
| وروستی برخه: | **د لوست تکرار (۱۵دقیقې)**<br>هغه لنډیز چې زده کوونکو د لوست لپاره برابر کړی دی، وڅېړئ او له څو کسو (ضعیف، منځني، او پیاوړي ،(لایق) څخه وغواړئ چې خپل لنډیزونه ولولي.<br>د لوست لنډیز په لاندې ډول دئ.<br>۱- د هېوادونو محصولات له یوه هېواد څخه بل هېواد ته صادر او واردیږي. په همدې دلیل د مختلفو هېوادونو محصولات د نړۍ د نورو هېوادونو په بازارونو کې، تر لاسه کولی شو.<br>۲- د نړیو والې سوداګرۍ او یا د نړۍ د هېوادونو تر منځ د اقتصادي اړیکو د موجودیت یو ډېر مهم دلیل دا دی چې د نړۍ ټول هېوادونه په اقتصادي ډګر کې د تولید په برخه کې، یو شان نه دي، له دې کبله هر هېواد هغه څه تولیدوي کوم چې ډېر تولیدولی شي او نور محصولات له نورو هېوادو څخه واردوي.<br>۳- د نړۍ د هېوادونو تر منځ د سوداګریزو چارو د ښه تنظیم په خاطر، د ( نړیوالې سوداګرۍ سازمان) په نامه یو سازمان جوړشو.<br>۴- هر هېواد چې زیات تولیدات لري،کولی شي چې په نړیواله سوداګرۍ کې زیاته ونډه واخلي.<br>۵- په خواشینۍ سره چې زموږ هېواد په نړیواله سوداګرۍ کې ډېر کم رول لري. موږ باید هڅه وکړو چې خپل اقتصادته وده ورکړو او په دې بازارکې زیاته ونډه ترلاسه کړو. |

د زده کوونکو ځوابونه وارزوی او هغوی ته لارښوونه وکړئ.

**د پوښتنو ځوابونه په لاندې ډول دي:**

۱- هغه هېوادونه چې طبيعي، انساني او تخنيکي ډېر امکانات لري، توليدي قوت يې هم زيات وي.

۲- ځکه هغه هېوادونه چې د يو محصول د توليد قوت لري، د خپلې اړتيا د اندازې نه زيات توليد کوي او نور هېوادونه هغه محصولات له نومړو هېوادونو څخه اخلي ځکه چې که چېرې هغوي يې په خپله توليد کړي نو ګران ورته تمامېږي.

۳- د نړيوالې سوداګرۍ سازمان د نړۍ د هېوادونو تر منځ د سوداګريزو چارو د تنظيم په خاطر، جوړشوی دی.

۴- نه، زموږ هېواد د ناظر په توګه په دې سازمان کې حضور لري.

۵) په خواشينۍ سره افغانستان د زياتو توليداتو د نه لرلو له کبله، په نړيواله سوداګرۍ کې مناسب ځای نه لري.

**وروستي فعاليت:**

د زده کوونکو ځوابونه وګورئ او لارښوونه ورته وکړئ.

## د څپرکي لنډيز:

د څپرکي لنډيز زده کوونکو ته ووايئ او وروسته له ( قوی او کمزورو ) زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

سودا ګرۍ ته د اړتيا د درک لپاره ( په ځانګړې توګه د هېوادونو تر منځ سوداګري) يوه ساده مثال ته پاملرنه وکړی:

د بېلګې په توګه که چېرې يو بزګر غنم وکري د کاله لس خرواره غنم تر لاسه کوي خو که چېرې د ميږو په روزنه پيل وکړی امکان لري چې يو اځې لس ميږې و روزي. خو که چېرې يو مالدار د هغه تخصص او امکاناتو په درلود لو سره چې لري بې مېږې وروزي په يوه کال کې (۲۰) ميږې روزلی شي. خو که چېرې غنم وکري پنځه خرواره غنم به لاسته راوړي. آيا که دغه دوه کسه هم غنم وکري او هم مېږې وروزي ډېره ګټه به وکړي او يا دا چې بزګر غنم وکري او مالدار ميږې وروزي او بيا خپل زياتي توليد يو له بله سره تبادله کړي او د غوبنې او غنمو اړتياوې يې د تبادلې له لارې تر سره کړي ؟طبيعی خبره ده چې که چېرې هر يو هغه څه توليد کړي چې د هغې په باره کې ډېر امکانات او تخصص لري، ډېره ګټه به ترلاسه کړي.

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د ټولنيزو خدمتونو موسسې** |
| ۲- لويه موخه | د ډاگ (پست) او مخابراتو له ادارو سره د زده کوونکو آشناکيدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده کوونکي وپوهيږي چې:<br>۱- د ډاگ دنده داده چې د خلکو ليکونه، چاپ شوي څيزونه او د خلکو نور شيان له يوه ځايه بل ځای ته وليږدوي.<br>۲- خپل ليکونه د ډاگ له لارې خپلو خپلوانو ته واستوي.<br>۳- د مخابراتي و سائيلو او د هغو د کړو ورو سره بلدشي. |
| ۴- د ښوونې دود | ۱- فکري هڅونه،۲- د وينا دود، ۳- پوښتنه او ځواب. |
| ۵-د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب، ۲- د ښوونکي د لارښود کتاب،۳- تخته او تباشير. |
| ۶-درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه يې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| ۷- د ارزونې طريقه | د شرايطو سره سم د ښوونکو په خوښه |
| لومړۍ برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل (۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړيکو نيول، د حاضرۍ اخيستل. (۵ دقيقې)<br>**لومړۍ فعاليت (۱۰ دقيقې)**<br>فعاليت د پوښتنې او ځوابونو او د فکري هڅونې طريقو څخه په گټه اخيستنې سره تر سره کړئ.<br>**د لومړي فعاليت ځواب:**<br>۱- د نېغ په نېغه اړيکو او يا هم د کوم بل چا پواسطه د ليک دلېږلو له لارې.<br>۲- نن سبا زيات وسايل شته چې د خلکو تر منځ اړيکې ټينگوي. پست،ټيليفون، موبايل، فکس او انټرنېټ د دې وسايلو له جملې څخه دي.<br>۳- هو، نن سبا د اړيکو د ټينگولو لپاره موسسې جوړې شويدي. چې د هغو له ډېرو مهمو څخه کولی شو چې پست او مخابرې ته اشاره وکړو.<br>**لومړي متن (۱۰ دقيقې)**<br>متن شرح کړئ او وروسته له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.<br>**دويم فعاليت (۱۰ دقيقې)**<br>د دې فعاليت په تر سره کولو کې د پوښتنې او ځوابونو او فکری هڅونې له دود څخه کار واخلي. |

| | د دویم فعالیت ځوابونه: |
| --- | --- |
| | ۱- په پخوا وختونو کې پیغامونه په شفاهي ډول، د کوم سړي او یا د کوترې په واسطه لیږل کیدل او تر لاسه کیدل.<br>۲- نن سبا د ټیلیفون، موبایل، فکس او برښنا لیک ( ایمیل) له لارې اړیکې نیول کیږي.<br>**لومړي متن** (۱۰ **دقیقې**) |
| **دویمه برخه**<br>**( په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل** (۵ **دقیقې**)<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او د حاضرۍ اخیستل.<br>**وروستی برخه:**<br>**د لوست تکرار:**<br>۱- ډاګ ( پست) لږ شانته سپک شیان او د خلکو لیکونه لیږدوي.<br>۲- د پستي خدمتونو څخه د ګټې اخیستنې په صورت کې، باید د هغې د ځانګړو مقرراتو رعایت وکړو.<br>۳- مخابرات داسې وسایل زموږ په واک کې راکوي چې کولی شو له هغو څخه په ګټه اخیستنې سره، یو له بله سره اړیکې ټینګې کړو.<br>۴- ټیلیفون، موبایل، فکس او انټرنیټ د مخابراتي غوره او مهمو وسائیلو څخه شمیرل کیږي؟<br>**پوښتنې** (۸ **دقیقې**)<br>د زده کوونکو ځوابونه وګورئ او دوي ته لارښوونه وکړئ.<br>د پوښتنو ځوابونه په لاندې ډول دي:<br>۱- له ډاګ (پست) څخه.<br>۲- دلیک دلیږلو مرحلې د لوست په متن کې راغلي دي.<br>۳- فکس،د خلکو د اسنادونو کاپيي ( نقل) نورو خلکوته چې په نورو ځایونو کې وي، استوي.<br>۴- ایمیل( برښنالیک) انټرنیټي پست دی.<br>**وروستنی فعالیت:**<br>د زده کوونکو ځوابونه وګورئ او هغوي ته لارښوونه وکړئ. |

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
| --- | --- |
| ۱- د لوست موضوع | **د ټولنيزو خدمتونو موسسې** |
| ۲- لويه موخه | د بيمې او سرې مياشتې د کارونو او دندو سره د زده کوونکو آشنا کيدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده کوونکي د دې درس له لوستلو وروسته بايد:<br>۱- له نورو سره د مرستې کولو اړتيا درک کړي.<br>۲- د سرې مياشتې د دندو او فعاليتونو سره آشناشي.<br>۳- د ماين لرونکو او بې خطره سيمو علامې او رنګونه وپېژني.<br>۴- د بيمې د موسسو د دندو او فعاليتونو سره آشنا شي.<br>۵- د بيمې ډولونه وپېژني. |
| ۴- د ښوونې دود | ۱- د وينا دود، ۲- پوښتنه او ځواب۳- د متن تحليل او مستقيم تدريس |
| ۵-د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب، ۲- د ښوونکي د لارښود کتاب،۳- تخته او تباشير. |
| ۶- درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه يې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| ۷- د ارزونې طريقه | د شرايطو سره سم دې ښوونکي وټاکي. |
| لومړۍ برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل** (**۵ دقيقې**).<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره دعاطفي اړيکو نيول، حاضرۍ اخيستل.<br>**لومړۍ فعاليت** (**۱۰ دقيقې**)<br>فعاليت د متن تحليل د دود له مخې تر سره کړئ.<br>د لومړي فعاليت ځواب:<br>۱- څرنګه چې انسانان وجدان او عاطفه لري له دې کبله ديو بل د مشکلاتو په وړاندې بې تفاوته نشي پاتې کيداي.<br>۲- د هغوي سره د نقدو او غير نقدي مرستو له لارې.<br>۳-کله کله امکان لري چې نېغ په نېغه مرستې وکړي، خوښه لاره يې داده چې د سرې مياشتې له لارې خپلې مرستې زيانمن شوو ته ور واستوي. |

<table>
<tr><th>لومړي متن (۵دقیقې)</th><th></th></tr>
<tr><td>متن زده کوونکو ته تشریح کړی او په پای کې له هغوي څخه پوښتنې وکړئ.<br>دویم فعالیت (۱۰ دقیقې) فعالیت د فکري هڅونې د دود له مخې تر سره کړئ.<br>د دویم فعالیت ځوابونه<br>۱- د جګړې، غلا، ټکر، اورلیګېدنې، زلزلې، سیلاو او طوفان خطرونه.<br>۲- خپل مالونه له لاسه ورکوي، ژوبلیږي( زخمي کېږي) او یا وژل کېږي.<br>۳- احتیاط او مخنیوي یې وکړو، د بیمې په موسسو کې د غړیتوب له لارې د هغې مالي زیانونه جبران کړو.<br>دویم متن (۱۵ دقیقې)<br>۱- هغه متن چې د منځنې فعالیت نه وروسته راځي، دویم متن دئ.<br>۲- متن د بیمې تر عنوان پورې ولولئ او توضیح یې کړئ.</td><td></td></tr>
<tr><td>د لوست پیل<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او دحاضري اخیستل.<br>د دویم متن دوام (۱۰ دقیقې)<br>د بیمې د ډولونو تر عنوان وروسته متن ولولئ.<br>د لوست تکرار (۱۰ دقیقې)<br>پوښتنې (۱۵ دقیقې)<br>د زده کوونکو پوښتنې وګورئ او هغوي ته لارښوونه وکړئ.<br>د پوښتنو ځوابونه په لاندې ډول دي:<br>۱- هیله لرو چې له هغوي سره مرسته وکړي.<br>۲- سره میاشت.<br>۳- بیمه د اورلګېدنې، غلا، سیلاو، زلزلې او داسې نورو څخه اوښتي مالي زیانونه د پیسو د ورکړې په واسطه جبرانوي.<br>۴- د بیمې ډېر مهم ډولونه عبارت دي له: د اشخاصو بیمه، د مالونو بیمه، او د مسؤولیت بیمه.<br>۵- د اشخاصو او مالونو په بیمه کې کله چې څوک ناروغه کېږي او یا یې مال ته زیان رسیږي د هغه د درملنې او د مال د تاوان پیسې د بیمې شرکت ورکوي.</td><td>دویمه برخه<br>( په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي.</td></tr>
</table>

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د ټولنيزو خدمتونو موسسې** |
| ۲- لويه موخه | د ښاروالۍ، پوليسو او د ترافيکو له پوليسو سره اشنا کيدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده کوونکي د دې درس له لوستلو وروسته بايد:<br>۱- د پاکي او نظافت اهميت درک کړي.<br>۲- د خپل ښارد پاکي او نظافت په وړاندې د مسئوليت احساس وکړي.<br>۳- د امنيت اهميت او هغه ته د افرادو او ټولنې اړتيا، درک کړي.<br>۴- د پوليسو دندې او دهغوي د کار اهميت وپېژني.<br>۵- د ښار د نظم په راوستلو کې د ترافيکي قوانينواهميت درک کړي.<br>۶) د ترافيکو د پوليسو د دندو او کارونو سره آشنا شي. |
| ۴- د زده کړې دود | ۱- د وينا دود، ۲- پوښتنه او ځواب ۳- د متن تحليل. |
| ۵-د زده کـــــړې د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب، ۲- د ښوونکي د لارښود کتاب،۳- تخته او تباشير. |
| ۶-درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه يې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| ۷- د ارزونې طريقه | ۱- پوښتنې او ځوابونه. |
| لومړۍ برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل (۵ دقيقې).**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره دعاطفي اړيکو نيول، حاضرۍ اخيستل او د تېرشوي لوست تکرار.<br>**لومړی فعاليت (۵ دقيقې)**<br>فعاليت د متن تحليل د دود له مخې تر سره کړئ.<br>**د لومړي فعاليت ځوابونه:**<br>۱- بايد هغه جارو کړو او د کور وسايل مرتب کړو.<br>۲- نا پاک شيان يا خځلې په کوڅو کې وانه چوو او د خپل ښار او کلي په پاک ساتلوکې کوښښ وکړو.<br>۳- نه ! موږ هم کوښښ کوو خو بايد چې فعاله ښاروالي هم موجوده وي چې د ښار دښکلا او پاکۍ لپاره کار وکړي. |

| | **لومړي متن (۱۰ دقیقې)** |
|---|---|
| | د زده کوونکو لپاره متن ولولئ او توضیح یې کړئ ( د وینا دود)؛<br>**دویم فعالیت (۵ دقیقې)**<br>فعالیت د پوښتنې او ځوابونو د دود له لارې تر سره کړئ.<br>**د دویم فعالیت ځوابونه:**<br>۱- هو، پولیس د خلکو د امنیت د ساتلو لپاره کار کوي.<br>۲- پولیس دنده لري چې د خلکو امنیت وساتي او د هغوي څخه د غلو، ډاراچوونکو او تروریستانو او هر ډول نا امنیو په وړاندې ملاتړ وکړي.<br>**دویم متن (۱۰ دقیقې)**<br>د دویم فعالیت نه وروسته متن زده کوونکو ته توضیح کړئ ( د وینا دود)<br>**دریم فعالیت ( ۵ دقیقې)**<br>فعالیت د پوښتنې او ځوابونو د طریقې له لارې ترسره کړئ.<br>**د دریم فعالیت ځوابونه:**<br>۱- د ترافیکو پولیس:<br>۲- نه! ځکه چې د ترافیکي نظم او مقرراتو پرته، موټرونه او نور نقلیه وسایل نشي کولی چې په ښه توګه تګ راتګ وکړي.<br>**دریم متن (۵ دقیقې)**<br>متن زده کوونکو ته توضیح کړئ. ( د وینا دود)<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د لوست وروستۍ برخه او د څېړکي په لنډیز باندې په کور کې کار وکړي او راتلونکي لوست ته یې تیار کړي. |
| **دویمه برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او حاضرۍ اخیستل؛<br>**د لوست تکرار (۱۰ دقیقې)**<br>۱- زموږ ښار او کلي زموږ د کورونو په څېر ساتنې او څارنې ته اړتیا لري.<br>۲- ښاروالي دنده لري چې ښارونه پاک کړي او دهغوي د ښکلي کولو په لارکې زیار وباسي. |

۳- پولیس دنده لري چې غله، ډاراچوونکی او نور مجرمان (خطاکاران گناهگاران) ونیسي او محکموته یې وسپاري. په دې ډول پولیس د خطرونوځخه زموږ په ژغورلوکې مرسته کوي.

۴- په ښارونو کې موټر ډېر زیات دي، د هغوی تگ راتگ هم نظم او ترتیب ته اړتیا لري.

۵- د ترافیکو پولیس د ترافیکي قوانینو په اجراکولو سره د موټرونو تگ او راتگ تنظیموي.

**پوښتنې** (۱۰ دقیقې)

زده کوونکو باید د متن په دقیقې مطالعې سره مخکې له مخکې ځوابونه تیار کړي وي. چې کوم یې صحیح دي او کوم یې غلط دي.

د پوښتنو سم ځوابونه په لاندې ډول دي.

۱- څرنگه چې د ښار چاپیریال لوی دی نو یو یا څو کسه د هغه د پاکولو وس نه لري له دې کبله ښار یوې داسې موسسې ته لکه: ښاروالۍ ته اړتیا لري چې زیات انساني ځواک او امکانات یې په واک کې وي.

۲- ښار د چټلیو څخه پاک کړي. د گلانو په کرلو او د نیالگیو په کېنولو او د پارکونو په جوړولو سره، ښار ښکلی کړي.

۳- دامنیت ساتل او د مجرمانو په وړاندې مقابله کول.

۴- د تگ راتگ لپاره مقررات ټاکي. په مناسبو ځایونو کې خاصي علامې دروي، هغه چاته چې د موټر چلول یې زده وي.لایسنس ورکوي او د چلوونکو د سرغړونې څخه مخنیوي کوي.

۵- نه! ځکه چې په کلیوکې د لېږد را لېږد واسطې دومره ډېرې ندي.

**ورستې فعالیت** (۱۰ دقیقې)

د زده کوونکو ځوابونه وگوری او سم ځوابونه په تخته باندې ولیکئ.

**د فصل لندیز:** (۱۰ دقیقې)

د فصل لنډیز ولولی او له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي تر څو ډاډه شی چې هغوی د څپرکي پر محتوا باندې پوه شوي دي.

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **ډله ييزې رسنۍ** |
| ۲- لويه موخه | د ډله ييزو رسنيو سره آشنا کيدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده کوونکي د دې درس له لوستلو وروسته بايد:<br>۱ - د رسنيو د مختلفو ډولونو سره آشناشي.<br>۲- د هرې رسنۍ د کار ډول وپېژني.<br>۳- د رسنيو ترمنځ توپيرونه او ورته والي پيدا کړي.<br>۴- په خپل ټولنيز ژوندانه کې د رسنيو د نقش اوتاثير سره آشنا شي. |
| ۴- د ښوونې دود | ۱- فکري هڅونه،۲- د وينا دود، ۳- پوښتنه او ځواب او مستقيم تدريس |
| ۵-د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب، ۲- د ښوونکي د لارښود کتاب،۳- تخته او تباشير. |
| ۶- درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه يې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| ۷- د ارزونې طريقه | ۱- پوښتنې او ځوابونه. |
| لومړۍ برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | د لوست پيل (۵ دقيقې).<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره دعاطفي اړيکو نيول، حاضرۍ اخيستل او د تېرشوي لوست تکرار.<br>**لومړی فعاليت (۱۰ دقيقې)**<br>فعاليت د مستقيم تدريس له دود څخه په ګټه اخيستنې سره ترسره کړئ.<br>**د لومړي فعاليت ځواب:**<br>۱- انځور ته وګورئ.<br>۲- د بيلګې په توګه، تلويزيون فلم او ګرځنده انځورونه خپروي.<br>۳- دوی ټول خلک له يو څه څخه خبروي، ليکن و سايل او د دوي د کارډول يو له بله سره توپير کوي.<br>**لومړي متن (۱۰ دقيقې)**<br>متن زده کوونکو ته ولولئ او ورته تشريح يې کړئ( د وينا دود)<br>**دويم فعاليت (۵ دقيقې)**<br>فعاليت د پوښتنې او ځوابونو له دود څخه په ګټه اخيستنې سره، تر سره کړئ. |

| | د دویم فعالیت ځواب |
|---|---|
| | راديو يوازې آواز خپروي په داسې حال کې چې تلويزيون سربېره پر آواز، انځورونه هم ښکاره کوي.<br>**دويم متن (۱۵ دقيقې)**<br>دويم متن د مطبوعاتو د بحث تر آخره پورې زده کوونکو ته توضيح کړئ ( د وينا دود).<br>**کورنی کار:**<br>زده کوونکو ته ووایاست چې د لوست په وروستنۍ برخه باندې په کور کې کار وکړي او د راتلونکي لوست لپاره يې تيار کړي. |
| **دويمه برخه ( په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي)** | **د لوست پيل (۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړيکو نيول او حاضرۍ اخيستل.<br>**دويم متن:**<br>د دويم متن پاتې برخه د انټرنېټ بحث زده کوونکو ته تشريح کړئ.<br>**د لوست تکرار (۱۵ دقيقې)**<br>د زده کوونکو کار وارزوئ دوی بايد د لوست لنډيز ليکلی وي، کولی شو چې په لاندې ډول خلاصه کړو:<br>۱- د ډله ئيزو اړيکو وسايل خلک د سياسي، اقتصادي، فرهنگي او علمي چارو څخه خبروي او دهغوي لپاره درغنده مشغولتيا زمينه برابر وي.<br>رسنۍ په درې مهمو ډولونو وېشل کېږي:۱- د اوريدنې،۲- د اوريدنې،ليدنې، ۳- دليکنې.<br>۲- ډېرې مهمې ډله ييزې رسنۍ عبارت دي له: تلويزيون، راديو، مطبوعاتو او انټرنېټ څخه.<br>**پوښتنې (۱۵ دقيقې)**<br>زده کوونکو بايد مخکې له مخکې د متن له دقيقې مطالعې څخه، ځوابونه پيدا کړي وي. د زده کوونکو ځوابونه پر تخته باندې وليکئ او په آخر کې هغوي ته ووايئ چې کوم يې سم دي او کوم يې ناسم دي .<br>**د پوښتنو سم ځوابونه په لاندې ډول دي:**<br>۱- خلک د سياسي، اقتصادي، فرهنگي او علمي چاروڅخه خبروي او د مناسبې مشغولتيا وخت ورته برابر وي.<br>۲- راديو د اوريدنې رسنۍ، تلويزيون د اوريدنې ليدنې رسنۍ او ورځپاڼه د ليکنې رسنۍ ده.<br>۳ - د اوريدنې د رسنۍ ښېگڼه داده چې خلک کولی شي چې د کار کولو په وخت کې هم ورته غوږ ونيسي وايي وري نيمگړتيايې داده چې انځور نه ښکاره کوي.<br>۴- د ليدنې اوريدنې رسنۍ ( تلويزيون) د شيانو انځورونه ښکاره کوي او هم يې خبرې اويدل کېږي.<br>۵- انټرنېټ په نړيواله کچه يو زيات شمېر کمپيوټرونه سره نښلوي او هغو ته اجازه ورکوي چې د يو بل له مطالبو څخه گټه واخلي. په عين حال کې، انټرنېټ موږ ته هم اجازه راکوي چې يو بل ته ليکونه وليږو او يا د کامرو څخه په گټه اخيستنې سره يو له بله سره خبرې وکړو.<br>**وروستنی فعاليت (۱۰ دقيقې)**<br>د زده کوونکو ځوابونه وگورئ او سم ځوابونه پر تخته باندې وليکئ. |

| سرلیکونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | ډله ییزې رسنۍ او ټولنه. |
| ۲- لویه موخه | د ټولنې او ډله ئیزو رسنیو د متقابلو اړیکو سره آشنا کیدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده کوونکي د دې درس له لوستلو وروسته باید وپوهېږي چې:<br>۱ - رسنۍ خلک د ټولنې له مهمو جریانونو او پېښوڅخه خبروي.<br>۲- خلک کولی شي چې د رسنیو له لارې د دولتي چار واکو په کړو وړو باندې څارنه وکړي، خپلې نیوکې او رغنده نظریې هغوي ته ورسوي.<br>۳- رسنۍ خلک له خپلو حقوقو او دندو څخه خبروي.<br>۴- رسنۍ هغه وخت خپل کارونه په ښه توګه سرته رسولی شي چې دبیان اوعمل د آزادۍ څخه برخمنې وي.<br>۵- رسنۍ باید خلک د ټولنې له ستونزو او مشکلاتو سره آشنا کړي.<br>۶- په ظالمو او مستبدو دولتونو کې رسنۍ په دولت پورې تړلې وي او د هغه د کړو وړو وجه ښیي ( ستاینه کوي) |
| ۴- د ښوونې دود | ۱- فکري هڅونه،۲- د وینا دود، ۳- پوښتنه او ځواب د متن تحلیل. |
| ۵-د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | ۱- درسي کتاب، ۲- د ښوونکي د لارښود کتاب،۳- تخته او تباشیر. |
| ۶- درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه یې په یوه درسي ساعت کې تدریس کېږي. |
| ۷- د ارزونې طریقه | ۱- پوښتنې او ځوابونه، ۲- پرتله کول. |
| لومړۍ برخه ( په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي) | **د لوست پیل** (۱۰ دقیقې)<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره دعاطفي اړیکو نیول، حاضرۍ اخیستل او د تېر لوست تکرار.<br>**لومړي فعالیت** (۱۰ دقیقې)<br>فعالیت د متن تحلیل د دود له مخې تر سره کړئ.<br>**د لومړي فعالیت ځواب**:<br>۱- هو، رسنۍ کولی شي چې خلک د ټولنې له مهمو پیښو څخه خبر کړي. هغوي د خپلو حقوقو او دندو سره آشنا کړي او دولتي چارواکي د هغوي له نیوکو او نظریو څخه خبر کړي. |

| | |
|---|---|
| **لومړي متن** (۱۰ دقیقې) | |
| متن زده کوونکو ته ولولئ او ورته تشریح یې کړي ( د وینا دود)<br>**دویم فعالیت** (۱۰ دقیقې)<br>فعالیت د پوښتنې او ځوابونو د دود له مخې ترسره کړئ.<br>**د دویم فعالیت ځوابونه:**<br>۱- دا چې خلک وکولی شي یې له وېرې او بندیز څخه د مختلفو مسئلو په باره کې خپلې نظرېې بیان کړي.<br>۲- رسنۍ په هغه وخت کې ټولنې ته ګټورې ثابتیدای شي چې هېڅ ډول وېره او فشار هغه د حقیقتونو له ویلو څخه منع نکړي.<br>**دویم متن** (۱۰ دقیقې)<br>دویم متن د مطبوعاتو بحث تر آخره پورې توضیح کړئ ( د وینا دود)<br>**کورنی کار:**<br>زده کوونکو ته ووایئ چې د درس په وروستۍ برخه باندې په کور کې کار وکړي او راتلونکي لوست ته یې تیار کړي. | |
| **د لوست پیل** (۵ دقیقې)<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او حاضرۍ اخیستل.<br>**دویم متن:**<br>دمتن پاتې برخه، یعنې د انټرنېټ بحث زده کوونکو ته تشریح کړئ.<br>**د لوست تکرار** (۱۵ دقیقې)<br>د زده کوونکو کار وارزوئ دوي بایدد لوست لنډیز لیکلي وي. کولی شو چې درس په لاندې ډول خلاصه کړو:<br>۱- د ډله ئیزو اړیکو وسایل خلک د سیاسي، اقتصادي، فرهنګي او علمي چارو څخه خبروي او د رغنده مشغولتیا وخت ورته برابر وي.<br>۲- رسنۍ په درې مهمو برخو وېشل کېږي: ۱- د اوریدنې ۲- اوریدنې – لیدنې ۳- لیکنې.<br>۳- ډېرې مهمې رسنۍ عبارت دي له: تلویزیون، رادیو، مطبوعاتو او انټرنېټ څخه. | **دویم برخه**<br>( په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي) |

| | پوښتنې(۱۵ دقیقې) |
|---|---|
| | زده کوونکو باید متن په غور لوستلی وي او مخکې له مخکې یې ځوابونه تیار کړي وي. د زده کوونکو ځوابونه پر تخته باندې ولیکئ او په پای کې هغوي ته ووائي چې کوم یې صحیح دي او کوم یې غلط دي.<br>د پوښتنو سم ځوابونه په لاندې ډول دي.<br>۱- ځکه چې رسنۍ خلک له مختلفو مسأیلو څخه خبروي.<br>۲- ځکه چې هغوي له خپلو حقوقواو دندوسره آشنا کوي او دهغوي نظریې دولتي چاروآکو ته اود دولتي چارواکو نظر یې دوی ته رسوي.<br>۳- خلک د رسنیو له لارې د خپلو حقوقو او دندو سره آشنا کېږي. او د خپل ځان او ټولنې د راتلونکي او سر نوشت په وړاندې د مسؤولیت احساس کوي.<br>۴-که د بیان آزادي موجوده وي، رسنۍ کولی شي چې خپلې دندې عملي کړي.<br>۵- حکومتونو ته د خدمت کولو په خوا کې دریږي.<br>**وروستنی فعالیت** (۱۰ دقیقې)<br>د زده کوونکو ځوابونه وګورئ او صحیح ځوابونه یې پر تخته باندې ولیکئ. |